یکشنبه ۲۱ قوس ۱۳۶۷
Dec 11 - 1988
سال نهم شماره ۸۶
سماره مسلسل ۲۲۳۹
سال تاسیس ۱۳۵۹




# حقیقت انقلاب ثور

ارگان کمیته مرکزی حزب دموکراتیک خلق افغانستا ن

## ژمني بايد ترسره شي

دملګرو ملتو نو په دري ځلويښتمه غونډه کې دشوروی اتحاد دکمو نیست ګو ند د مر کز ی کمیټې عمو مي منشي او دهغه هیواد دعالی شورا درئیسه هیئات صدر ملګری م.س. ګر با چف دنړیوالو حالاتو ،سیمه ییزو کړکیچونو او دافغانستا ن دسولی دابتکار څخه د ډکو طرحو او پیشنهادو نو دملاتړ په باب‌دروانی میاشتی په ۱۷ نیټه یوه خوراًمهمه او هراړخیزه وینا وکړه‌چی ټول نړیوال اذهان یی ځانته متوجه کړل او په ډیر شور اوزوږ سره یی هر کلی وشو .

د افغا نستان د خلـك دمو کراتیك ګوند دمر کزی کمیټې عمومی منشی او جمهور رئیس ملګری نجیب اللـه ، دملګری ګر باچف دوینا داهمیت په باب په خپلی راډیـو ـ ټلویزیونی مرکی کی وویـل: «د ملګر و ملتو پـه دري ځلو يښتمه عمومي غونډه کی دشوروی اتحاد دکمونست ګوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشـی او دشوروی اتحاد دعالی شورا درئیسه هیئات دصدر ملګری میخائیل سر ګیوویـچ ګرباچف خبر ودیوی نړیوالی مهمی اوحیاتی پیښی په توګه بین المللی مسئالی دهغـو په بیلا بیلو برخو اواړ خو نو کی‌وڅیړلی او دشوروی اتحاد په بهر نی سیا سـت او دبین المللی اړیکو پـه ډګر کی یی دیوه نوي‌عادلانه نظم په باب نوی اوله نوښت نه ډك‌دریځ‌روښانه اوبرجسته کړ. دغه وینا چی دټو لـو نړیوالو دپاملرنی‌وړ ګرځیدلی، دافغانستان دجمهوریت دتا یید وړده بیاپه تیره ددغـی وینا مرکزی ټکی یعنی‌دنړی دروانو کشالو او پرابلمونو دحل په‌خاطر دتوافقا تـو دلارو چارو لټول ،دافغـا- نستان جمهوریت علاقه مندی په‌جدی توګه هغی تـه راګرځوی ...»

دتیری سنبلی په میا شت کی دافغانستان دنا پیيلتو پ دریځ د تثبیت، په یوی‌غیرپوځی سیمی باندی دا فغانستان دبدلو ن ، دافغا نستـان بیا و دا نو لـو او اجتماعی ـ اقتصادی ودی‌ته دنړیوال سازمان دپام اړول او دافغانستان دکړ کیچ دحـل کولو له پاره دملګروملتونو دسرمنشی جلا لتمآب دوکویار په‌مشری دیوه بین المللـی کنفرانس دجوړید و پیشنهاد وړاندی کړی شو. پدی‌پیشنهاد کی‌چی دملی شـورا ددواړو مجلسونو استازو ته پـه خطاب کی دملګری نجیب‌اللـه له‌خوا وړاندی شو، اپوزیسیون ته بلنه ورکړی شوه چی‌دنړی په‌هرګوټ او بیا په تیـره

که دسعودی دولت و غواړی، دا.ج چمتو دی چی په مکـه معظمه کی له هغـو ی سره خبرواترو ته کینی .

دغه دسولی برياللی بريـد خپل اغيز منتوب، ښه نيت اوريالیزم ثابت کړ. زموږ وطنوالو دډير وغـــوتدو په ترڅ کی او دپیغا مونو پـه استولو سره دملګری نجیب‌الله ددغو پيشنهادو نو په‌میرانـه اوبی دریغه هرکلی وکـړ. دادی اوس‌او س چی ددغـو پیشنهاد ونو لابډای اومتکا مل شکل بین المللی دګـــراو نړیوالی ټولنی ته وړانـدی کیږی نوزموږ دو ټنوا لـــو لاباور او اعتقاد دملـــی مصالحی سیاست په بریالیتوب اوزموږ دګوند په انسا ن پالونکی او واقع بینانـــه پیشنهاد ونو با ندی ټینـګ اوپخیږی .

دملګرو ملتو نو په ٤٣ مه غونډه کی ،ملګری‌ګرباچـف دافغانستان د جمهور یـت دټولو پیشنها دو تــو په نظر کی نیو لو او له‌هغو سره په بشپړ مطا بقـت اوملاتړ کی په مشخصه توګه پیشنهاد وکړ :

ـ د۱۹۸۹ کال د جنوری له لومړی نیټی څخه پــه ټولو ځایونو کی دبشپړاوربند نافذیدل.

ـ دټولو یرغلیز و عملیا تو اودزو بندول . دافغانی‌اپوز ـ یسیون ډلی به دخبرو اترو په بهیر کی تر خپل کنتـرو ل لاندی سیمی په واك کـی ولری.

ـ له دی سره جوخت دی له هماغی نیټی څخه ټو لـو متحاربو اړخو نو ته دوسلـو ورکول بند کړی شی .

دپراخ بنسټ دحکو مـت دجوړیدو په بهیر کی‌دی‌دملګرو ملتونو دعمومی ټولنی دفیصله لیك سره سم دملګروملتـو دسولی دساتنی قوتونه کابـل اوټولو ستراتیژیکو مر کزونـو ته ولیږدول شی .

شوروی مشر دملګرو ملتونو دسرمنشی څخه غوښتنه کړیده چی‌دافغانستان دبی طر فـی اوغیر پوځی کولو لپـــاره دیوه بین المللی کنفرا نـس دجوړیدو دایدی دتطبیـق په ډګر کی آسانتیاوی برابری کړی.دشوروی اتحاد دغـه دریځ چی دملګری ګربا چف په وینا کی منعکس شو یـدی دافغانستان د جمهو ریــت دټولو پیشنهادو نو سره بشپړ سمون لری او ز مــوږ دهیواد دټو لو هغو پخوا نیو پیشنها دونو ملاتړ کوی ،دکومو چی دملی مصالحې په چوکاټ کی وړاندی شوی وو .

دلته یوه ټکی ته بایـد پاملرنه وشی او هغه دبیـن المللی عمومی‌حقو قو یواصل په دی معنی‌چی« ترو نو نـه باید سرته ورسول شی»دژنیو

دموا فقت لیکونو دلاسلیـك کیدو را پدیخوا نه یوازی داچی دپاکستان لوری دهغـو دتطبیق په لار کی‌څه کوچنی ګام هم‌اوچت نه کړ، بلکه‌دغه تړون یی په زړه دردو و نکی توګه تر پښنو لاندی کړاولګیا دی تر پښنو لاندی کوی یی .

ملګری نجیب الله پــه حقه سره دغه واقعیت تــه ګوته نیو لی ده چـــی «افغا نستان دبا رو تو پـه یوه ګود ام باندی بـــدل شویدی او په دغه ګودام‌کی نورځای نشته چی بیاهـــم یکی باروت توی کړو غواړم یادونه و کړم هغه ځوك چی ددغه ګودام شاو خوا تـــه له‌اور سره لوبی کوی بایـد خپله دغه خطر نا کـــه لوبه پای ته ورسوی .»

که چیری اپوز یسیو ن د سولی ددغو پیشنهاد ونو عملی کولو ته چمتو نه‌شی او بیاهم دلته او هلته دخپلو لویدیځو پلویانو په امسه « دسیاسی بریالیتو ب » ناری‌پورته کړی اوډیوځی لارو دبری خامه تمه ولری اوکه چیری زموږ ګاو- ندی هیواد ونه مخصو صا پا- کستان‌وغواړی چی‌د« بارو تود ګودام شاو خواته له اورسره لوبی » ته دوام ورکړ ی نـو ټول ناوړه او له خطر څخـه ډك عواقب به یی په خپلـه غاړه وی او په خپله به یـی ګالی . دا.ج په ژوره تو ګه هیله من دی چی دسو لی ګټوم پیشنهاد ونه چی دملګری ګر- باچف له خوازموږ د هیواد د پیشنهادو نو په دوام اوملاتړ سره وړاندی شوی د ټو لواړ- خونو له خواو منل شی او د افغانستان جمهور یت کی ژرتر ژره یوره او ربنداعلام اوزموږ هیواد دیوه بی طرف هیواد او غیر پوځی سیمی په توګـه، تثبیت اواعلان شی پدی برخه کی دافغا نستا ن خلك دشو- روی اتحاد دټولو هلو ځلـو او صاد قانه ورور ګلو یزو مرستو نه په کور ودانی ویلو سر ه د بیـن ا لمللی تضمینوو نکو هیواد و اوبیاپه تیره د ملګرو ملتو نود سولی دساتـ ونکو لار ځاری . البتـه چی دجګړی بندو ل یو څــه او د افغانستان بیا ودانو ل او ټولنیزه وده بل‌څه دی. زموږد خلکو داپه حقه هیله ده چی زر تر زره دملګرو ملتونو لـه لاری دافغا نستان دبیا جوړو- نی کار او زموږ دجګړه ځپلی ملی اقتصاد د بیا رغونی لپاره مرستی جار ی کړی شی .

او وروستی خبره دا چـی باید «دملګرو ملتو د سولی دساتنی قوتونه خپلی د ندی داسی سرته ورسو ی چی په جګړه کی ښکیل اړ خو نـه‌د هغوی په شته والی کی ځا ـ نونه خوندی او ډاډه احساس کړی او دهغوی فعا لیتو نــه دهیڅ یوه پا یتخت د هدا یت سره سم ونه انګیری ».



دخواشینی دمراتبو د لیکلو په حال کی — دباختر عکاسی

## دژوری خواشینی څرګندول

### ملګری نجیب الله دا.خ.د.ګ دمر کزی کمیټې عمومی منشی اودا.ج جمهو ر رئیس دا رمنستان دجمهوریت دخواشینوونکی پیښی له کبله دخپلی ژوری خواشینی مراتب په مخصوص کتاب کی درج کړل

د.ا.خ.د.ګ دمر کزی کمیټـــی عمو منشـــــی‌او دافغا ـ نستان جمهور ر ئیـــس ملګری نجیب الله پرون لـه غرمی مخکی په کا بل کی دشو- روی جمهور یتو نو اتحـــاد سفارت ته لاړ اوشـــوروی- ارمنستان په جمهوریت کـــی دوروستی زلزلی د دردوو نکی پیښی له امله یی د خپلـــی ژوری خواشینی او ډاډ ګیرنی مراتب په هغه مخصوص‌کتاب کی چی له همدی امله په‌هغه سفارت کی ایښودل شوی دی درج اولاس لیك کړل .

دغه راز ددغی دردوو نکی پیښی له امله د ډاډ ګیر نی دمراتبو لیکلو پـه خـــا طر دجمهور رئیس مرستیالان ښاغلو عبدا لواحد سرا بـــی ، عبدالحمید محتاط او دا.خ.د.ګ دسیـــا ســـی بیرو وغړی او د جمهـــور ر ئیـــس

۲ مخ

## فرامین ریاست جمهـــوری

دفتر ریاست جمهوری اطلاع میدهد رفیق تجیب الله منشی عمومی کمیته مرکزی ح.د.خ.ا، و رئیس جمهور افغا نستـا ن بتاسی از حکم ماده (۱۱۰ ) قانون اساسی ج.ا، و مـــواد (۲۰ و ۲۵) قانون تشکیـلا ت وصلا حیت محاکم طی فرا میـن جدا گانه تقرر ذوات آتـی را منظور فر مو ده اند .

شاغلی عبدا لو لی (حجت) فرزند عبدا لعلی بحیث معاون قاضی القضات و رئیس هیـات قضا یای مد نی ستره محکمه.

شاغلی میر عزیز الحـــق (ضعیفی) فر زند میر فیض ـ الحق بحیث رئیس دیوان‌جزای عمومی ستره محکمه .

ـشاغلی عبدا لحکیـــم (قیو می ) فرزند عبدالقیـوم بحیث رئیس دیوان امنیت‌عامه ستره محکمه .

ـشاغلی بهاوا لدین ( بهأ) فرزند غلام نبی بحیث رئیـس دیوان تجار تی ستره محکمه .

ـ شاغلی عبدا لما لـــك (جوهر صدیقی ) فر زنـــد عبدالخا لق بحیث رئیس دیوان مدنی و حقوق عامه ستـــره محکمه .

(ص ۲)

## دبشر دحقوقـو داعلامیی د۴۳ کالیزی له امله

## دملګـرو ملتو دسازمـان دسر منشی پـه نامـه

## دملګـری نجیب الله پیغـام

د افغا نستان د خلك دمو- کراتیك ګوند د مرکزی کمیټی عمومی منشی ا ودافغا نستا ن دجمهور رئیس ملګر ی‌نجیب- الله له خوا دبشر دحقو قو د نړیوالی اعلامیی دڅلو ښتمی کالیزی له امله دملګرو ملتو دسازمان دسر منشی په نامه دغه پیغام نیویارك ته‌مخا بره شویدی .

دملګروملتو دسازمان سرمنشی

جلالتماب ژاویر پریز دیکو ـ یلار !

۲ مخ




## صلح پدیده مجرد نیست

جنگ وصلح هر دو پدیـده های اجتماعی اند . در شکل گیری این پدیده ها منا فـع وروابط ناشی از چگو نگـی ساختار اقتصادی ـ اجتما عی در سطح جامعه و روابط جهانی ومنطقوی عمیقاً اثر دارد . از اینرو شناخت این پدیده هـا وروند شکل گیری آن در ما ـ ورای روابط اجتماعی و منا فع طبقاتی و قشری افراد جا معه قابل طرح نیست . اگر زنده‌گی هر انسان بصورت مجرد مطرح باشد صلح‌وزنده گی غیرقابل تقسیم است، اماوقتی پـای منافع اجتماعی طبقاتی وسوال روند تکامل تاریخی جا معه و مساله جهش های اجتما عـی به سوی ترقی و تکامل اجتماعی به‌میان آید ، شرایط صلح ـ آمیز بنفع این روند و عامـل گسترش دهنده و پا یدا ری بخشنده منافع طبقات واقشاری است که در رشد پرو سـه های نوین اجتماعی منـا فع مشترك دارندوطبیعیست کـه عدهٔ هم درین روند منا فع‌خود را از دست میدهند و صلـح برای آنها بر حسب مقتضـای منافع شان پدیده نا میمـون وبیگانه است، مگر آنکه منافع عام ملی وسوال دوام هستـی انسان در کلیت آن مطر ح باشد ، وآنگاه مساله صلح‌در فراسوی منافع طبقاتی وقشری به نوعی مساله ((اخلاقی)) قابل درك مبدل شود ، که در چنین وضع نیز درجه علا قمند ی وسهمگیری در امر تامین صلح همواره یکسان نیست و خوا ـ سته ناخواسته جهش هـا و کششهای موافق ومخالف یکجا باهم سیر میکنند وهر که حکم زمان را با خود داشت پیروزی با اوست .

## گـــوشته: درسها وحماسه ها

در ولایت ننگر هار مردمـان جسور ، وطنپر ست وزحمتکش بسر میبر ند که در طول قر نها همه چیز خود را وقف دفاع از سرزمین خویش نموده انـد . این مردمان از تاخت و تـاز سکندر کبیرگرفته تاتـاراج- گری مغلی واز سبکسری هـای اورنگ تا دست درازی هـا ی فرنگ همیشه در صف پیکـار جای مناسب خود را یا فته‌اند وبا دشمنان در آویخته انـد. طی سالهای جنگ اعلام ناشده برضد کشور ومردم ما نیـز باشنده گان ولایت ننگر هـار مطا بق عنعنهٔ نیا گان بزر گ شان در برابرحوادث حالت‌تما- شه بینی‌را اختیارنکرده‌اند بلکه فعالانه در جهت تأمین منافـع مردم زحمتکش به میدان مبا ـ رزهٔ گرم تاخته اند . آنها بخاطر اجرای این رسالت به نحـو بهتر ، به صفوف قطعات قوای مسلح پیوسته و عده ای زیادی از اهالی مناطق سرحدی ولایت درمناطق سرحدی جزو تامهای ملیشهٔ سرحدی و قومـــی را ایجاد کرده اند .

دولت ج.ا، نیز از طر یـق ارگانهای مر بوطه تمام‌کمکهای مناسب را بعمل آورده است تا آنها بتوا نند وظایف خود را به وجه احسن اجرا کنند .

به منسو بین این قطعـات معاش مناسب تعیین نمـوده است، اسلحهٔ معاصر و مناسب را در اختیار شان قرار دا د ه است وانواع مهمات و ضر ـ وریات دیگر را برای شـان اکمال کرده است ، در مـو رد وضع معیشتی و کیفیت اعاشه آنها توجه همیشگی مبـذول داشته است ودر جای که تهیه اعاشه گرم میسر نبوده مبلغ نقدی بدل اعاشه را در اختیار شان گذاشته است . به جز ـ وتامهای مذکور غرض اجرا ی امور یو می وسایط جد یـد نقلیه اکمال گردیده و بــه سران آنها رتبه نظا می اعطا ومقامات قوما ندانی و رهبری قطعات قومی را تفو یض نموده است. همچنان از جمله اموال امدادی وبلا عوض دو لت ج.ا، وکشور دوست اتحاد شو روی مقادیر زیاد آنرا به منسو بین همین قطعات تخصیص دا د ه است ، خلاصهٔ دو لت تمام‌تلاش خود را به سهم خویش بـه خر چ رسا نیده تااین قطعا ت بتوا نند تحت شرایط مسا عد از محلات شان و شاهراه مهـم جلال آباد و تورخم فعا لا نـه دفاع نمایند .

اما حوادث ماه های عقـرب وقوس سال جاری با صرا حـت نشان داد که تعدادی از قو ـ ماندانان ومنسو بین این جز ـ وتامها ویك عدهٔ از مو ظفیـن ارگانهای مسئول وظایف شانرا با احساس عمیق مسئو لیـت وروحیهٔ سر شار از فدا کاری در برابر وطن طور یکسـان اجرا نکردند . تعداد زیادآنها در شرایط نهایت حسـاس و

(ص ۳)

> در ولسوالی گوشته رهبران قومی و عناصرجسور وبیباکی بودند که با پایمردی و احساس عمیـــق مسئولیت باحوادث مقابله کردند وحماسه ها آفریدند

## برندهٔ اصلی، مشی مصالحهٔ ملی



مصالحهٔ ملی امروز از چارچوب صرفاء ملی بدر آمده وخصلت جهانشمول را کسب کرده‌است. هر آنکه با الفبای مبارزهٔ سیاسی آشنا باشد ، میداند که از پخش اولین سندی مبنی بر اعلام مشی م صالحهٔ ملی تا بزرگتر ین رخداد هـای دو سال اخیر و بالا خره‌مذ- اکرات طائیف و سخنرا نــی میخا ئیل گر باچف در ساز- مان ملل متحد حلقات بهـم پیو سته زنجیری اند کـه

(ص ٤)

جمهوری افغا نستان از بدو اعلام مشی مصالحه ملـی در تمام ابعاد ، تا سر حد دعوت اپوزیسیو ن به دیا لـوگ و مذاکره مستقیم‌دست به ابتکا- رات و تلاشها یی زده که‌اینك امروز خصلت وکرکتر بیـنا- امللی یافته است . سیا ست زمان سپری شده‌به صورت قانع کننده نشان داده است که راه نظامی برد نه داشته وفقط حل اوضاع اطراف افغا- نستان یك راه دارد و آن‌پیر- وزی مشی مصالحهٔ ملی وحـل وفصل قضایا از طریق‌سیا- سی میبا شـد .

سخنرا نی میخا ئیل گر باچف د ر ا جلا س پا ر لما ن ا تحا د شو ر و ی (ص ۴)

حکومت‌ومردم‌ویتنام از پیشنهادات جدید جمهور ی افغانستان دفاع مینماید (ص ۴)

## دخلکـو دنیکمرغـــی پــه‌خاطــر پیشنهادونه

دملګرو ملتو دعمو می اسامبلی‌په ٤٣ مه غونډه‌کی‌دش.- ا.ك.ګ د مـر کز ی کمیټـی‌دعمو می منشی او دشورو ی- اتحاد د عالی شورا درئیسـه‌هیات صدر ملګری میخا ئیل سر ګیوویچ ګر با چف وینا،دبشر د ژوندانه په بیلا بیلو مواردو کی ده. په تیره بیا دافغانستان دښا و خوا مسا لی دډیر ژر حل د لاسبری پـــه‌خاطر او دملګری ګر باچـف دوینا په بـاب دا.خ.د. ګ.د مرکزی کمیټی د عمو مـــی منشی او دافغا نستان دجمهوررئیس ملګری نجیب الله مر- که زموږ دو ټنوا لو دپرا خه‌هرکلی وړ ګر ځید لی ده.

دغه مرکی په بیلا بیلـوټولنو کی له پراخه ملاتړسره مخامخ شوی دی .

موږ دملګری ګربا چف دویناا‌ودملګری نجیب الله د مر کـی په اړو ند له خپلو یو شمیر وطنوا لو سره لنډی مر کـی کړی چی په ګډه یی سره‌لولو.

ملګری اسد الله کر یان د کابل ولایت دګو ندی کمیټـی مرستیال :

شوروی اتحاد په پرله پسـی توګه هڅه کړی ده چی ټولی سیمه ییزی لانجی د دیا لوګ له لاری حل او فصل کړی، او دانسا نانو لپاره له جګـړی څخه خلاص ډاډه ژوند تا مین کړی .

ددغه ستر او انسا نی کار دتامین لپاره دشوروی اتحاد ګوندی ا ودو لتی رهبرملګری میخائیل سر ګیو ویچ ګربا- چف په پرله پسی ډول رغنده او حیاتی پیشنهاد وړا نـدی کړی دی چی له هغی جملـی څخه دملګرو ملتو د عمو مـی اسامبلی په دری ځلویښتمه‌ غونډه کی دملګری میخا ئیل ګرباچف له ورو ستی وینـا څخه په اطمینان سره یا دونه کولی شو .

ملګری ګر باچف په ملګرو ملتو کی دخپلی وینا په پیـل کی وویل چی «موږدلته راغلی یو چی ددغه ساز مان چــی‌د بشریت د عقل او ارادی د یو موټی کیدو ښکار نـدو ی دی عظمت ته در ناو ی پر ځـای کړو » په دی جمله کی‌دشو- روی اتحاد درهبری ټولی‌بشر- دوستی انعکاس مو ندلی دی. دشورو ی اتحاد رهبرود ډیرو

(۲ مخ)

**موږ سوله پیشنهادوو نه جګـړه، هغوی چی دجګړی اورته لمن وهی خپله به هم پکی وسوځی**

# دژوري خواښيني څرګندول

(دلومړي مخ پاتي)

مرستیال ملګري محمد رفیع، صدر اعظم ښاغلي داکتر محمد حسن شرق، دولسي جرګې رئیس ښاغلي داکتر خلیل احمد ابوی، قاضي القضات ملګري نظام الدین تهذیب، دصدر اعظم ځیني مرستیالان، لوی څارنوال، داساسي قانون دشورا رئیس او غړي، داسلامي مشورتي شورا رئیس اوغړي، دقبایلو دشورا رئیس او غړي دحکومت غړي، دافغانستان دخلك دموکراتيك ګوند د مرکزي کمیټي دسیاسي بیرو او دارالانشا غړي، اودهیواد دسیاسي ګوندونو اود ټولنیزو سازمانونو مشران په کابل کې یو شمیر سفیران اود کور ديپلوماتیك غړي د شوروي اتحاد سفارت ته لاړل او په دغه کتاب کې یې د خپلې داد ګیرنی اوخواخوږي مراتب ولیکل.

باختر

## دبشر دحقوقو داعلامیې د ۴۳ کالیزې له امله دملګرو ملتو دسازمان دسرمنشي په نامه

# دملګري نجیب الله پیغام

(دلومړي مخ پاتي)

زما لپاره د ډیري خوشحالی ځای دی چي دافغانستان جمهوریت دخلکو او ددولت په نماینده ګی اوپه خپله د ځان لخوا ډیري ښې مبارکي دبشر دحقوقو دنړیوالی اعلامیې د څلویښتمې کالیزې له امله څرګندوم.

دملګرو ملتو سازمان دبشر دحقوقو دنړیوالی اعلامیې په تصویب سره دبشریت لپاره دپرمختیا او آرامه ژوند لپاره دلازمو ځواکونو دتنظیمو او په مقصد د سولې، نړیوال امنیت، دملتونو ترمنځ تفاهم او نړیوالی همکاری دیوا ځینی مدافع په توګه د ۱۹۴۸ کال دد سامبر په لسمه نیټه وکولای شول دبشر د حقوقو درعایت د ټینګښت لپاره د اغیزمن تضمین زمینه د رنګ، جنس نژاد، مذهب او سیاسي عقایدو له مخې له هرډول توپیر نه خلاص برابره کړي خو په خواشیني سره باید وویل شي چي اوس هم زموږ دسیاری په ملیونونو انسانان دخپلو دیرو بشري حقوقو نه بې برخي دی چي دهغه علت د سیمه ییزو کیچو نو استعمار، نوی استعمار، امپریالیزم، نژادی توپیر، اپارتاید او نړیوال اقتصادی غیر عادلانه نظم په شته والي کی موند لای شو او له بلی خوا هم ددغه شان عواملو شته والي اساسي حقوقو په تیره بیا دسو له ییز ژوند حق دخود ارادیت حق او دبشر د پرمختیا حق ته د ګواښ سبب شویدی.

تر اوسه پوری هم د فلسطین ز نځیدلی خلك سره له دی چي دهغو خپلواکه دولت اعلام شوی او دنړیوا لو ټولنو داکثریت له خوا په رسمیت پیژندل شوی داسرائیلو د پراختیا غوښتو نکو او انساني ضدعملونو دسیاست له امله له خپلو اساسی حقوقو نه بې برخي شو یدی دجنوبی افریقا او نامیبیا خلك د پریتور یا دتو پیر غوښتونکی رژیم تروا کمنی لاندی ځوریږی او اوس هم خپلو بشپړو او اساسي حقوقو ته ندی رسیدلی.

محترم جلالتماب!

ددغی تاریخي ورځی لمانځنه د ملګرو ملتو دسازمان غړو هیوادو ته ددی وخت پیدا کوی چي هغوی یو ځل بیا خپل ملاتړ او ژمنی د بشر د حقوقو نړیوا لی اعلامیې ته ددغه لوړ نړیوا ل سازمان په وړاندی نوی کړي.

د افغانستان جمهوریت د خپل انسانی سیاست له مخی تل دبشر داساسی حقوقو څخه په پراختیا او ملاتړ کی دملګرو ملتو سازمان هلو ځلو ته په درنه ستر ګه ګوری او له هغه په غو ښه توګه ملاتړ کوی.

لکه څنګه چي زموږ هیواد زموږ دخلکو په ګټه اودبشر دحقوقو د زیات ټینګښت په منظور او په زیاترو نړیوا لو سندو نو دهغی جملی څخه داقتصادی او ټولنیزو حقوقو دمدنی او سیاسی حقوقو او د شکنجې، ځوروولو او د نورو ظالمانه او غیر انسانی چلندو نوضد کنوانسیو ن سره یو ځای شو یدی.

دملګرو ملتو د سازمان او دبشر دحقوقو دنړیوا لی اعلامیې په نسبت دافغانستان د جمهوری دو لت ددرناوی مراتب نه یوازی زموږ دهیواد دنافذ اساسی قانون زموږ ددغی ستری ملی وثیقی په سریزه کی تضمین شویدی بلکي دهغه په متن کی هم دملګرو ملتو دسازمان دمنشور او دبشر د حقوقو دنړیوا لی اعلامیې او د نورو منل شویو اصولو او موازینو او دبشر دحقوقو له نړیوالی اعلامیې سره په بشپړ یووالی کی اساسی حقوقو، آزادی ګانو د رعایت اودر ناوی په وړاندی د دولت مکلفیت څرګند شو یدی او زموږ د هیواد داتباعو لپاره د هغو درعایت او در ناوی په باب معتبره تضمینو نه تسجیل شو یدی.

دافغانستا ن جمهوری دولت دملی روغی جوړی د انسان دوستانه تګ لاری په اعلا م سره دبشر د حقوقو د رعایت په لاره کی عملی ګامونه او چت کړ یدی لکه څنګه چي ددغی انساني تګلاری په رڼا کی ددی زمینه برابره شوه چي دملګرو ملتو د سازمان دبشر د حقوقو د کمیسیون خاص خبریال دری ځلی زموږ هیواد ته سفر وکړ دافغانستان په جمهوریت کی یې دبشر د حقوقو دڅرنګوالی په باب څیړنه وکړه.

دافغانستان جمهوری دولت چي په هیواد کی دوی نی توڼیدو او ورورو ژنی دبندیدو په خاطر د ژنیو دموافقه لیکونو د لاس لیك اود قیق رعایت په باب دپراخ بنسټیز ائتلافي حکومت د جوړیدو او دځو ګوندی سیستم لپاره لازمی تیاری لري اود ملګرو ملتو دساز مان تر څارنې لاندې یې د یو نړیوال کنفرانس دجوړیدو له لاری دافغانستان دغیر پوځی کو لو او ناپییلتوب په باب اقدامات نیولی دی د ملګرو ملتو انسانی هڅو نو او دغه رازد بشر دحقوقو دنړیوا لی اعلامیې درعایت دصادقانه درناوی دافغانستان د جمهوری دولت د ټینګی عقیدی څرګندوی دی.

دافغانستان جمهوریت په داسی حال کی چي دملګرو ملتو دسازمان بشر غو ښتونکی هلی ځلی په تولودګرونو کی په تیره بیا دبشر دحقوقو په برخه کی ستاییی یو ځل بیا دبشر د حقوقو په نړیواله اعلامیه کی لیکل شویو اصولو ته خپله ژمنه اوبشپړه وفاداری نوی کوی او دهغی د تحقق په خاطر به هیڅ ډول هلی ځلی ونه سپموی.

نجیب الله دافغانستان جمهور رئیس

# دیالوگ، اساس راه‌حل است

اگر به پیشنهادها وابتکارات ج.ا مراجعه شود، این حقیقت مسلم آشکار می گردد که حاکمیت مردمی باحمایت دوستان بین المللی خویش از موضع حل سیاسی جوانب خارجی و داخلی کشور حرکت نموده ونه تنها طرفدار صلح وآرامش در کشور، بلکه درمرکز فعالیت ها برای قطع جنگ وخونریزی قرار داشته است.

پروسهٔ دیالوگ میان جوانب ذیدخل در افغانستان، کثیر الجوانب ووسیع است دیالوگ باسران هفتگانه، دیالوگ باشخصیت‌های سیاسی خارج از کشور، دیالوگ باقوماندانان داخلی وبالاخره دیالوگ باهمه آنانی که بنابرعوامل مختلف در مقابله باحاکمیت مردمی قرار گرفته اند. برای این دیالوگ ح.د.خ.ا وحکومت ج.ا هیچگونه پیش شرط خاصی را مطرح نه نموده‌است وهدف از آن استقرار صلح در کشور می باشد. هرگونه دیالوگی که بتواند به آتش بس، قطع فعالیت های جنگی وجلوگیری از خونریزی بیانجامد با منافع علیای ملی ما مطابقت دارد.

افغانها باید خود تصمیم بگیرند که در دوراهی‌انتخاب جنگ وصلح کدام یکرا انتخاب می کنند. مردم افغانستان خواهان آن‌اند تا تمام‌نیروهای سیاسی کشور رای شانرا برای صلح بدهند وبه جنگ هرچه عاجلتر پایان دهند.

حقانیت راه‌دیالوگ را اکنون درسر خط سیاست نوین حاکمیت ج.ا قرار داشته به اثبات می رسانند.

البته واضح است که «طایف» آغاز دیالوگ نیست. ج.ا از مدتها بدینسو راه دیالوگ بامخالفین را جستجو نموده است واز امکان خود ودوستان بین المللی خویش درزمینه استمداد جسته است.

> **مذاکرات طایف حقانیت راه دیالوگ رابه اثبات میرساند**

برای ما مهم این نیست که به گفته محترم نجیب الله رئیس جمهور افغانستان «کی‌واز کجامی‌آید»، مهم اینست که مذاکره صورت می گیرد واز این طریق راه به سوی قطع جنگ در کشور هموار می گردد.

صبغت الله مجددی یکی از رهبران هفتگانه که درمذاکرات طایف شرکت‌داشت طی مصاحبه ئی با خبرنگار رادیوی صدای امریکا اعتراف نمود که در نتیجه مذاکرات آنها معتقد گردیده اند که اتحاد شوروی «طرفدار آنست که در افغانستان صلح وآرامش بر قرار گردد.»

دوراول مذاکرات میان نماینده اتحاد شوروی ورهبری اتحاد هفت گانه که به موافقهٔ رئیس جمهورافغانستان صورت گرفت، در طایف پایان یافت.

گزارش های مطبوعاتی حاکی از آنست که مذاکرات درفضای مساعدی انجام یافته است وادامه خواهد یافت.

درکابل، هما نگونه که از این مذاکرات حمایت به عمل آمد، نقطه نظر اینست که سرانجام دیالوگی که با مخالفین آغاز شده است در مسیر لازم قرار می گیرد. گرچه بعضی هاتلاش دارند تا مذاکرات طایف رابه عنوان وسیله یی علیه برنامهٔ مصالحه ملی که از جانب جمهوری افغانستان اعلام گردیده است وتحقق میابد، مورد استفاده قرار دهند، امارواقعیت اینست که هرپیشرفتی در دیالوگ با مخالفین عملاًسیاست مصالحه ملی راغنا و استحکام می بخشد. ج.ا ازهمان نخستین روز های اعلام مشی مصالحه ملی‌از این موضع عمل نموده است ومی نماید که راه حل‌مسایل اطراف افغانستان وجوانب داخلی این مساله صرفاً از طریق مذاکره، دیالوگ وتفاهم میسر شده می تواند وبس.

این نقطه نظر درمقابل همه آن ایده ها یی قرار دارد که ادامهٔ رویارویی نظامی را پیشنهاد می نمودند. حالا سوال اینجاست که مذاکرات طایف کدام حقیقت را تائید می کند؟ به نظر ما این‌مذاکرات

محمد کریم

# دخلکو دنیکمرغی په‌خاطر پیشنهادونه

«دلومړي مخ پاتي»

مهمو نړیوالو مسالو په باب لکه دسیمه ییزو لانجو لري کول، دودی په حال کی‌هیوادو سره‌مرسته، دو سلو کمښت، محیطی حفظ الصحه اوپه افغانستان کی دسو لی پرمسا لی باندی دغوڅ لاسبری په باب اوږ ده وینا وکړه اومشخص پیشنهادونه یی وړاندی کړل.

شوروی اتحاد دافغانستان دخلکو ددیر ربښتینی دوست په توګه دافغانستان دشاوخوا مسائلی دحل لپاره پر له پسی په سترو او دستاینی‌وړ نوښتونو لاس پوری کړی دی.

دشوروی اتحاد او زموږ د هیواددرهبری په هڅو سره د ژنیو موافقه لیکو نه نهایی شوی دی خو لکه څنګه چي دملګری ګرباچف په وینا کی یی انعکاس موندلی دی چي لاسلیك شوی تړو نونه باید رعایت شي، ندی رعایت‌شوی زموږ هیواد دا.ج‌دموافقه لیکو نو له لاسلیك کیدو څخه تر اوسه په بشپړی حوصلی سره دژنیو د موافقه لیکونو مواد په عمل کی پلی کړی‌دی اودملګری ګرباچف دوینا په باب دملګری نجیب الله په مرکه کی دژنیو دموافقه لیکو نو او دسو لی د بین المللی کنفرانس دبشپړ تحقق په خاطر دا. ج بشپړ چمتووالی یو ځل بیا په ډاګه شوی دی.

زه دا. خ .د. ګ د غړی په توګه یو ځل بیا دافغانستان په باره کی دملګری ګرباچف رغنده پیشنهادو نه چي‌دا. خ.د. ګ او دا. ج دولت له سیاست سره بشپړ سمون لری ملاتړ او هر کلی کوم اودشوروی اتحاد تو ل پیشنهاد ونه په نړی کی دسر تر رهبری‌سولی دتامین په خاطر یو ستر ګام ګنم.

# دمننی پیغامونه

دا.خ .د.ګ د مرکزی کمیټی عمومي منشي او دافغانستان دجمهور رئیس ملګري نجیب الله لخوا د هند دجمهوریت دصدراعظم جلالتمآب راجیو ګاندی په نامه دافغانستان دجمهوریت له فضا څخه دتیریدو په وخت کی استول شوی پیغام له امله نوی ډیلی ته دمننی پیغام مخابره شوید ی.

په پیغام کی د مننو څرګندولو په ترڅ کی ویل شویدی چي دهند جمهوریت ته وروستی سفر او له جلالتمآب راجیو ګاندی اودهغه هیواد له نورو مقاماتو سره کتنه او په نیویارك کی دکتو رو خبرو اترو کیدل په سیمه کی د حالاتود ثبات اود سولی په ګټه ددوو اړو هیواد و ترمنځ ددو ستی او تاریخی اړیکو په ټینګښت کی دبدلو ن دټکی په توګه بلل کیږی.

★

دا.خ.د. ګ د مرکزی کمیټی عمو می منشی او دافغانستان دجمهور رئیس ملګری نجیب الله اودافغانستان دجمهوریت دصدراعظم ښاغلي ډاکتر محمد حسن‌شرق په نامه دمغلستان دخلکود انقلابی ګوند دمرکزی کمیټی دعمومی منشی اود مغلستان دستر خورال درئیسه هیئت دصدر ملګری‌جا مبین باتمونخ اود مغلستان دخلکو دجمهوریت دوزیرانو شو را درئیس دوما ګین سود نام له خوا دمننی پیغام دمغلستان دخلکو دجمهوریت د ٦٤ کالیزی له امله دمبار کی پیغام په ځواب کی را رسید لی دی.

په پیغام کی دذړه له کومی مننی دڅرګندو لو په ترڅ کی دافغانستان په جمهوریت کی دملی روغی جوړی دتګ لاری په تحقق کی دافغانستان‌دخلك دموکراتیك ګوند اودافغانستان‌دجمهوری دولت دزیاتو بریا لیتوبو نو هیله شوی‌او دبی وسلی کولو اود افغانستان دهمیشنی بیطر فی‌په ارتباط یی دملګری نجیب الله دورو ستیو پیشنهاد و نو سره ننګه او ملاتړ څرګند شویدی.

دغه راز په پیغام کی باور څرګند شوی‌چی ددواړوهیوادو ترمنځ دوستانه اړیکی‌د مغلستان د خلکو دجمهوریت اود افغانستان دجمهوریت دخلکو، دترقی او نړیوا لی سولی او امنیت‌دګټو پربنسټ زیاته وده او پر مختیا مومی.

با ختر

دهیواد اتل وسله وال پوځ دهیواد دخپلواکی، اوملی واکمنی او دهیواد دانقلا بی لاسته راوړنو څخه ددفاع په خاطر بشپړ پوځی‌او سیاسی‌چمتووالی او ډیری عصری وسلی لری دوی د سولی اودوطن دسلا متیا د خوندی ساتلو اتل حماسه جوړوو نکی‌مدافعان دی چي د هیواد خلك یی تل په اتلو لیو ویاړی. دبابه خان عکاسی

# پوځی حالت

## دوا کمسن کمیسون‌تاکل

دقوس په‌اتلسمه دپنجشنبی په ماښام دکندهار ښار په شمالی سیمو باندی دالو تکو وزی وشوی.

چي دهغو په نتیجه کی ۲٤ تنه شهیدان، اته تنه ټپیان، لس کورو نه وران او څو کورونه زیانمن شول.

دغه راز دکندهار د ار دو په یو جزو تام باندی دد غو وزو په نتیجه کی اته سرتیری او یو افسر ټپیان شوی اودوی وداني زیا نمنی شویدی.

پدی ار تباط یو وا کمسن کمیسیو ن وټاکل شو چي لومړنی غونده یی‌دا.خ.د. ګ‌د مرکزی کمیټی د سیاسی بیرو دغړی اود جمهور رئیس دمرستیال ملګری محمد رفیع په مشری جوړه شوه.

دکمیسیون په غو نډه کی فیصله وشوه چي لاز مي مرستی دی چي نقدی پیسی، درمل، خو راکی مواد، جامی، اوداړتیا وړ نور لوازم‌دی‌ددغی پیښی له زیا نمن شویو کسانو سره وشوی.

دهغو مقد ماتی څیړ نو په نتیجه کی چي له سیمی څخه تر اوسه پوری شو یدی په دغه پیښه کی مبهم او دپو ښتنی وړ اړخونه لیدل کیږی.

مقدماتی څیړنی ښیی چي ددافع هوا متر صدو نو کړ یوالا نو هغه الو تکی چي له ختیځ لوری نه په ټیټه ار تفاع کی دالو تنی په حال کی وی اود کند هار دقـول اردو د قطعاتو او جزو تا مو نو دپوستو له خوا پری د درندو ماشینګنو وزی کیدلی ولیدلی.

څکه دمخکنیو تجر بو له مخی دغه پوستی پوهیدلی چي د افغانی او شوروی هوا یی‌پوځ الو تکی په ټیټه ارتفاع کی نه الوزی. په دی برخه کی جدی څیړنی دوام لری او د نتیجو په باب به یی وروسته هیواد والو ته خبر ور کړ شي.

دوسله وال‌پوځ قطعو او جزوتامو نو دسو لی اوامنیت دتامین او ټینګښت په خا طر ورمه ورځ دهیواد په یو شمیر ولایتو نو کی‌فعالیتو نه سرته رسولی دی چي د هغه په نتیجه کی افراطی ورانکاره ډلو ته درانده تلفا ت‌رسید لی دی.

## ننګرهار:

د ننګرهار ولایت په مربو طاتو کی‌دوسله وال پوځ دوړمی‌ورځی فعا لیت په نتیجه کی دا فرا طی‌عناصرو دعرب او کوچی په نو مونو ددو تنو مشرانو په شمول دهغوی دوه‌پنځوس تنه له منځه وړل شوی او یوولس لسوالی په شاو خوا کی‌دد ښمنو ډلو ترمنځ سختی نښتی وشوی.

ددغو نښتو په نتیجه کی‌د افراطی یوی ډلی دمشرمحمد الله په شمول له دواړوخواوو څخه دیارلس تنه و ژل شوی او دهغوی یو شمیر ټپیان شول.

## پکتیا:

دوسله وال پوځ دفعالیت په نتیجه کی چي ورمه ورځ دپکتیا ولایت دزرملی ولسوالی په مربو طا تو کی وشول‌په لس ګونو تنه افراطیو ن وځپل شول اودهغوی شل تنه ټپیان شو ل.

په دغه فعالیت کی دافراطی ډلو دریا کتیف یوه دستګاه او دوسلو اومهماتو یوه ډیپو ورانه شویده.

یشت تنه ټپیان شویدی.دغه راز ددی فعالیت په نتیجه کی دریا کتیف یوه دستګاه،دوه میله هاوانو نه، یوه داشکه او ددښمن اووه پټ ځایو نه له منځه وړل شو یدی.

## پروان:

د پروان‌ولایت دکوه صافی په سیمه کی دو سله وال پوځ دفعا لیت په نتیجه کی په لسګو نوتنه جګړه‌غوښتونکی افراطیو ن ټپی او د دښمن په لسګو نو ډول ډول وسلی له‌منځه وړل شویدی.

## خپل منځی نښتی

دافراطی ډلو ترمنځ دنښتو په دوام په دی ورو ستیو وختو کی دتخار ولایت د مرکز دتالقانو دښار او دفار یاب ولایت دپښتون کوټ دو ...

## جنایتکارانه‌عملونه

جنا یت کارو افرا طیو نو پرون سهار دملی بس دتصدی ترځنګ د چاودنی په ساز مان ور کولو سره یو ځل بیا زموږ دهیواد والو له سو لی او آرا می سره خپل ضدیت څرګند کړ.

دپاکستان او امریکا تر حمایی لاندی افراطی ډلو پوری مربوطو کسانو یوه اندازه چاودیدو نکی مواد په نقلیه واسطه کی ځای پرځای کړی‌و اود سهار دپنځو بجو په شاوخواکی دملی بس دتصدی ترځنګ دلو مړی مکرو ریان بلاك ته مخامخ وچاو دول چي د افرا طیو نو ددغه وحشیانه عمل په نتیجه کی دشیشو دماتید لو له امله زموږ یو شمیر هیواد وال سطحی‌ټپیان شول چي له پانسمان څخه وروسته له روغتون څخه رخصت شول. دغه راز دچاودنی سیمی‌ته نږدی ودانی لږ څه زیا نمنی شویدی.

باختر

## دبشر دحقوقو داعلامیې دکالیزی نمانځل

د ا. خ.د.ګ دمرکزی کمیټی عمومي منشی او دافغانستان د جمهور رئیس ملګری نجیب الله د پیغام په لو ستلو سره پرون د بشر دحقوقو دنړیوالی اعلامیې څلویښتمه کالیزه د کابل پوهنتون په اډیتوریم کی دیوی غونډی په ترځ کی ونمانځل شوه.

پدی غونډه کی چي دافغانستان دملګرو ملتو د ټولنی دافغانستان جمهوریت د حقوق پوهانو دټولنی اود کابل پوهنتون دحقوقو او سیاسی علومو دپوهنځی لخوا جوړه‌شوی وه دجمهور رئیس‌مرستیال ښاغلي عبدالحمید محتاط، قاضی القضات ملګری نظام الدین تهذیب، دافغانستان د ملګرو ملتو دټولنی رئیس او دلوړو او مسلکی تحصیلاتو وزیر پوهاند ډاکتر نوراحمدبریښ دافغانستان جمهوریت دسولی، پیوستون او دوستی د سازمان رئیس داکتر بصیر رنجبر، یوشمیر علمی او فرهنګی شخصیتونو دکابل پوهنتون یو شمیر محصلانو او استادانو اوپه کابل کی داوسیدونکی کور ډیپلو ما تیکو غړو ګډون کړی وو.

# فرامین ریاست جمهوری

(بقیه صفحه اول)

- شاغلی ضامن علی (بهسودی) فرزند برات علی بحیث رئیس دیوان محاکمه قضات و تنازع صلاحیت ستره محکمه.
- شاغلی محمد حنیف (سلیم) فرزند محمد سلیم بحیث عضو ستره محکمه.
- شاغلی بای محمد(دلدار) فرزند فرهاد بحیث عضو ستره محکمه.
- شاغلی عبدالحنان(صالح) فرزند عبدالمحمد بحیث عضو ستره محکمه.
- شاغلی جندول فرزند الیاس بحیث عضو ستره محکمه.
- شاغلی محمد عمر(مهمند) فرزند حاجی محمد بحیث عضو ستره محکمه.
- شاغلی عبدالودود(جوهری) فرزند ملا محمود بحیث عضو ستره محکمه.
- شاغلی عبدالغفور (امیری) فرزند امیر جان بحیث عضو ستره محکمه.
- شاغلی عبدالاحد (مجیب) فرزند عبدالواحد بحیث عضو ستره محکمه.
- شاغلی اولیاقل (باختری) فرزند صفر بای بحیث عضو ستره محکمه.
- شاغلی بهرام الدین (مقبل) فرزند اچلدی بحیث عضو ستره محکمه.
- شاغلی محب الرحمن فرزند حبیب الرحمن بحیث عضو ستره محکمه.
- شاغلی عبدالقباد (رود وال) فرزند امیر محمد بحیث عضو ستره محکمه.
- شاغلی محمد ناصر (حسن زاده) فرزند محمد حسن بحیث عضو ستره محکمه.
- شاغلی روح الامین(روحی) فرزند عبدالمنان بحیث عضو ستره محکمه.
- شاغلی محمد موسی فرزند خدا دوست بحیث عضو ستره محکمه.
- شاغلی بهاوالدین (روستا یی) فرزند غلام قادر بحیث عضو ستره محکمه.

# دسرغړونی په‌باب یادداښت

په افغانستان او پاکستان کی‌دملګرو ملتو دښو هڅو له هیئت سره دبهرنیو چارو وزارت رابط دفتر خبرراکوی چي‌پرون مازیګر دژنیو دموافقه لیکو نو څخه دپاکستان دڅرګندو سرغړونو په باب دافغانستان د جمهوریت دبهرنیو چارو دوزارت (۱٤٤) لیك په کابل کی دملګرو ملتو دښوهڅو دهیأت دفتر ته وسپارل شو.

په لیك‌کی دژنیو دموافقه لیکونو دلومړی سند ددوهمی مادی څخه دپاکستان دڅرګندو لسو سرغړونو په باب معلومات وړاندی شوی او له دغه هیأت څخه غوښتونه شوی چي دغه سرغړونی په دقیقه توګه وڅیړی او دنتیجی‌نه ئی دافغانستان دجمهوریت مقاماتو او دملګرو ملتو دسرمنشي آستازی ته خبر ورکړی.

باختر

# گوشته: درسها وحماسه ها

(بقیه ص اول)

تاریخی ازخود ضعف نشان‌دادند. بدون مقاومت موا ضع شا نرا بدشمن وا گذا شتند و عده ای از قوما ندا نان آنها درلحظات دشوار راه خیا نت را در پیش گرفته وبه معا ملات وطنفر ـ وشانه بادشمنا ن سر گرم شدند ودر بدل آن بانك نوت های جعلی را بدست آور دند مانند سندخان و مشر خا ن مربوط ملیشای لوی ولسوا لی شینوار ولایت ننگر هار که بنام نزدیك ساختن افرا طیون به مشی مصا لحه ملی ا ذ ن تما سگیری از سوی ولا یت ننگر هار را حاصل نمودند ودر حقیقت قصد شان اشتراك و سهمگیری در پلانهای خیا نت به منافع علیای کشـور و مصالح مردمی بود که بـا لای ایشان اعتماد کرده بودنـد . عده ای‌مانند جهانگیر قوماندان

ملیشه مومند دره که ملیونها افغانی کریدت تجار تی را نیز از دولت بد ست آورده بـود وولسوا ل آنجا بنام چـرا غ خان که تمام تلاشهای خاینانه دشمنان را به چشم سر مـی دید ولی برای تسکین احساس انتقا مجو یی از حریفان‌شخـ ی وتصفیه حسا بات انفرا د ی

مهر سکوت بر لب زده و د ر شرایط نازك با بی مسئولیتی خود را کنار کشیده خیثیـت تماشا بینان بی طرف صحنه را به خود گرفتند ومقا مات‌مسئول را نیز در تاریکی قرار دا دند که البته مردم کشور و تاریخ هیچگاه این خیانت شرم آور آنها را از یاد نخواهد برد وهم اکنون مسئو لین مذکور وسایر مقصر ین به محکمه کشا نـده شده وحکم عادلانه بالای آنهـا صادر خواهد شد .

اما در کنار این خیا نت ها وبزدلی ها، فرار های شرم ـ آور وترس ننگین، چنان‌رهبران قومی وعناصر جسور وبیباکی هم بودند که با پایمـردی و احساس عمیق مسئو لیت بـا حوادث‌مقا بله کردند . چنیـن نمونه ـهارا میتوان درملیشـه

نبی جان و زر پا چا در شینوار مشاهده کرد . چنین نمونه ها را میتوان درپا یمردی نـور ـ علم قوما ندان کندك سر حدی دریافت ، اما از این نمونه های قهرمانی انفرا دی که بگذریم ما نمونهٔ قهرمانی دسته جمعی را در پیکار طولانی مدا فعان ولسوالی گوشته می بینیم جائیکه شیر مردان نظیـر مومند نخان ، حاجی تاج محمد ، یاسین ، سوا تی ، متول، فر ـ یدون ، ببرك ، سید کر یم و منشی حزبی ولسوا لی محمد ـ امین در راس این حما سـه قرار دارند .

ما شاهد مکا لمهٔ تلیفو نی مومند خان قوماندان ملیشـهٔ با پدرش فر دوس خان بود یم که پدرش غرض درك وضـع حقیقي او را پای تلیفون خوا ـ

ست واز اواین اطمینـا نرا حاصل کرد که میتواند بـه رئیس جمهوری و قو ما نـدان اعلی قوای مسلح محتـر م نجیب الله اطمینان بدهد که مدافعان گوشته تا آخر یـن مرمی وآخر ین فرد دفاع‌خواهند کرد ؟ و پسرش که قوماندان جوان، بیباك و جسوری اسـت به پدرگفت : «بلی میتوا نیـد اطمینان بدهید . پدر، ماشمارا نزد رئیس جمهور و مـردم کشور سر افکنده نخوا هیـم ساخت » .

ما شاهد صحبت گـر م و مسئولانه محمد امین منشـی کمیته حزبی ولسوالی گوشته بامنشی کمیته ولایتی ننگرهار بودیم که می گفت : «فقط بما مهمات بر سا نید از همه چیز مطمئن باشید » ما شاهدآخرین

**مردم قهرمانان را در سرود های‌شان ، در روایات وحکا ـ یات‌شان ستایش خواهند کرد، بـگذار حماسه قهرمانان گوشته وهمه مدافعان وطن نسلها ی امروزوفردا را الهام بخشد .**

دیالوگ قاسم خان سر کـرده افراطیون منطقه با حاجـی تاج محمداین پیر مرد قهر مان در قطار مدا فعا ن گو شتـه بودیم که از پناه گا هش‌نعره زد :

آیا حاجی تاج محمد هنوز زنده است‌وصدای‌مرا میشنود؟. وحاجی تاج محمد که درمو ـ ضع خود چون کوه استـوا ر نشسته بود جواب داد بلی من منتظر تو هستم اگر تسلیـم میشوی انتخاب خوبی کرده‌ای، زیرا همرزمان جوانتر ازمن‌به تو این‌امکان رانخواهند داد ! ولی بلا فاصله صـدای خشما گین دشمن از کمینگاهش برخاست : من نه برای تسلیم شدن بلکه برای انتقام از تـو پیرمرد احمق آمده ام، فقـط میخواستم مطمین شوم که‌هنوز به عمر بیهوده ات ادا مـه

میدهی و حاجی تاج محمد دیـد که مردی با چند ین تن دیگـر از پناه سنگی بسوی اوهجو م آوردند واو شناخت که ایـن قاسم است که در گذ شته او هر قدر تلاش کرده بود ولـی

این جنایت پیشه راه مصالحه را درك نتوا نسته وبه جنـگ ادامه داده بود . حاجی تاج ـ محمد برای مقابله در برا بر مهاجمان خود از موضع بـر ـ

خاست وهمچو حریف مقا بل، قدر است به سو یش خیـز برداشت وبا اسلحه اش‌جواب داد و لحظهٔ بعد خاموشـی حکمفر ماشد . قاسم با هفت‌تن ازیاران بد کارش نقش زمین

شدند وحسرت کشتن دلیرمرد گوشته تاج محمد را با خـود به گور رسوایی شان بر دند، واما حاجی تاج محمد نیز زخم

برداشت ولی همرز مانش به مشکل او را قانع ساختند تابه درمان خود توجه کند . (اوهم اکنون در روغتون بستر است)

ما فریدون را دید یم وباوو حرف هایی داشتیم ولی علی ـ الرغم اینکه او در پیکار بزرگی ازخود قهرمانی نشان داده‌بود

نه در ادا واطـوار ونه در سخنانش نشا نی از غـرور برای لحظهٔ ای انعکاس نمیکرد .

وقتی مدال فدا کاری بـر سینه اش در خشید بـرا ی لحظهٔ کو تاهی برق شـا دی

برلبانش ظاهر شد اما بلا ـ فاصله سیمای او متا نت یـك

افسر ،یك قوماندان‌ویك‌مدافع وطن را بخود گر فت . آخر او در چنین سن اندك که به‌مشکل بیست سالگی را انعکاس‌مید ـ هد، قوماندان کندك است .

ما متیقن هستیـم که در ننگر هار تاریخی به زودی‌وضع صلح آمیز مسلط میگـردد ، ریختن اشکها بالای شهدا جای خود را به پرداختن به کـار ابا دانی و ساز نده‌گی میدهد، دلیر مردان نه با تفنگ، بلکه با بیل وکلند مصروف خواهند شد وبازهم حماسه ها یـی در

عرصه کار بجا خواهند گذاشت ولی ترس وجبن بزدلان وقهر ـ مانی شیر مردان فرا مـو ش نخواهد شد .

مردم قهرما نان را در سرود های شان، در روایات وحکا ـ یات شان ستایش خوا هـنـد کرد وبر بزدلان نفرین ابـدی خواهند فرستاد .

بگذار حماسه قهر ما نـا ن گوشته همهٔ مدافعان وطـن ، نسلهای امروز و فردا را الهام بخشد .

سپاس بیکران بر شمـا مدافعان گوشته ، وطن با لای شما افتخار میکند .

**ارسالی ریاست عمو می امور سیاسی اردو**

---

**گزارش تیلفونی ازبلخ:**

# مواظبت از گروپ های‌علاقه مندان حزب

اعضای ح.د.خ.ا ، کمیته ها وسازمانهای حزبی به خا طر تقویت و گسترش سازمانهای اولیه حزبی و رشد صفـوف حزب به خصوص در اوضـاع و احوال کنونی کشور یعنـی در شرایط ائتلاف وسیستـم چند حزبی توجه بیشتر مبذول داشته است .

کمیته حزبی ولایتی بلـخ بعد از پلینوم ماه سر طـان کمیته مرکزی حزب ۱۲ سازمان اولیه حزبی را در موسسا ت، ادارات ، قریه ها و قصبات ولایت بلخ ایجاد نموده است.

مسوول شعبه تشکیـلات کمیته حزبی ولایتی بلخ طـی صحبت تیلفونی ضمن توضیحات فوق‌گفت : کمیته‌حزبی ولایتی بلخ بعد از تدویر پلینـوم ماه سرطان کمیته مر کـزی حزب۴۱۴ تن از بهتر یـن وطنپر ستان ولایت اعـم از کار گران ،دهقا نان ،پیشه ـ

وران و روشنفکران را بـه صفوف حزب پذیرفته اسـت. همچنان در طی این مدت۳۰۶ تن‌را به گروپ های‌علاقه مندان حزب جدیداً تنظیم نموده اند.

باید گفت کمیته حزبـی ولایتی بلخ ، کاردر گـروپ علاقه مندان حزب را بصورت جدی مورد توجه قـرار داده و پیوسته از گروپ های علاقه مندان حزب کنترول به عمل میاورد تا افراد تصادفـی وارد حزب نگردند .

همچنان توجه بیشتر بـه اعضای حزب که جدیداً بـه عضویت حزب پذیرفته شده ـ اند معطوف شده است بـه منشی های سازما نهای اولیه حزبی دستور داده شده تـا اعضای جدید حزب را درقیمو ـ میت سابقه داران حزب قـرار دهند تا جدیـدا لورو دان را پیوسته رشد و پرورش دهند.

**نوید**

---

# ځوانان : کار ژوند مبارزه

**وضع دشوار نظامی ، سیاسی در کشور خواستار اشتراك فعـال س.د.ج.ا در تحکیـم قـوای مسلح است .**

از بیانیه رفیق نجیب الله درپلینوم ماه میزان کمیتـه مرکزی ح.د.خ.ا

دهیوا دځوانان دځپل‌تاریخي‌اوتولنیز رسالت په پیژند لو سره په پوره میرا نـه اولازمه سیاسی هو ښیاری دهیوا د له‌مادی او معنـوی‌ګټو او لاسته راوړ نو څخه دفاع کوی.

عکس: دبر یښنادښوونـوځانې دفاع دوه تنه زړه ور ځوانان.

دلطیفی عکاسی .

# ځـوانـان دسولی په‌دفـاع کـی

د۱۹۴۲ کال دنوامبر پـه میاشت کی ،دځوانا نـو فاشیستي ضد نړ یوال کنفرا ـ نس په‌لندن کی پرانیستـل شو اوپه هغه‌کی دځوانانـو دنړیوالی شورا دجو ړیدو پـه باب دځوانانو دتشکل پـه‌لاره کی دستر کار په توګه پریکړه وشوه. پدغه تاریخی کنفرانس کی‌دنړی ددری شپیتوهیوادونو څخه ۴۳۷ استازو او ۱۴۸ سلاکارانو برخه اخیستـی وه او دځوانانو دژوندا نـه اړوند ارزښتناك مسا یل یی وڅیړل .ددغه کنفرا نـس دکار په بهیر کی د«دموکراتو ځوانانو دنړیوال‌فدرا سیون » په نوم دنړیوال‌باوړ ی‌سازمان بنسټ کیښودل شـو،د ۱۹۴۵ کال دنوامبر په لسمه نیتـه ددغه فدراسیون اساسنا مه تصویب شوه، په همـدی اساس ځوانان‌هر کال دنوامبر لسمه ورځ دد مو کراتـو

ځوانانو دنړیوالی ور ځی په توګه دسولی او امنیـت دټینګښت په خاطرپه پرله پسی مبارزه او خلاق کار سره پـه ټوله نړی کی لمانځـی، ددغه سازمان پرله پسـی اوجدی فعالیت ، دهغـه دپیداینښت له لو مـړ ی ورځی ، امپریالیزم او دهغـه پلویان دی ته اړکړل چـی

دلندن په کنفرانس کی‌دټاکل شوی تګلاری څخه دفدراسیون دبی لاری کولو له پـاره پراخه هلی ځلي وکـړی .

ددمو کراتو ځوانانو دنړ یوال فدراسیون دړنګولو اودتاریخي دندو دسر ته رسو لـو

څخه دځوان نسل دبـی لاری کولو له امله یـسـی په ۱۹۴۷ کال کی دسـو ـ سیالیست ځوانانو ټو لنـه ،او په۱۹۴۸ کال کی یی دځوانانو نړیواله ټولنه جـوړه کړه.

امپریالیزم او د هغه پلو ـ یان دفدراسیون دفعا لیـت له‌هماغو لومړ نیو ور ځـو څخه ددغه فدرا سیـون د

«غیر سیاسی» کولو له پاره هلی ځلی‌کوی ،خودفدراسیون دعمل اولاری‌حقانیت اوسوالی دانسانی سپیڅلی ار مـان

دتحقق په لاره کی‌وځلیـد لکه چی‌په ۱۹۴۹ کال کـی ددوه اویا هیوادو څخـه

څه دپاسه شپیتو میلیو نـو ځوانانو او په ۱۹۶۲ کـال کی د ۱۴۰ ساز مانو نو پـه موجودیت یو سلو یومیلیون تنوځوانانو ددغـه فدرا سیون غړیتوب ترلاسه کړ چی‌پـه اوسنی وخت کی‌یی‌دځپلی مبا ـ رزی‌په لیکوکی دنړی‌د متر قی ځوانانو څه دپاسه دوه سوه سازمانونه یو موټی کړیدی.

**د د سوکرا توځوانانو دنړیوال فدراسیون د جوړ یدو د شپږ ځلو یښتمی کالیزی په و یار**

دغه فدراسیون دو یتنام ، چلی،فلسطین او افغانستان او دنورو آسیایی ، افریقا یـی اولاتینی امر یکا دهیوادو نـو ملاتړکوی.

دفدراسیون دارزښتنا کواو تاریخی نو ښتو نو څخـه

یوهم دامپر یا لستی ضـد مبارزی دټینګښت لپـا ره دځوانانو اومحصلانو نړیوا لو فستیو ا لو نـو ته سازمان ورکول او دهغوی ترمنځ ددوستی او پیوستو ن ټینګښت دی چی دمحصلا نو دنړیوا لی ټولنی سره یـو ځای ترسره کیږی .

دا. ځ.د.س له ۱۹۷۸ کال څخه راپدیخوادد‌غه فدراسیون غړیتوب لری چی دا پخپلـه په نړیوالډګر کی دا.ځ.د.س دپیاوړتیا ښکارنـدوی دی . دا.ځ.د.س ددغه فدرا سیون دفعال غړی په توګه دامپر ـ یالیزم پر ضد مبارزه کـی دسولی او دیتانت پـه کلکه دفاع کوی‌او دځوانانو دنړیوال فدراسیون دهد فونو دتحقق په‌لاره کی یی غوڅ کـار او مبارزه کړی او کـوی‌یی.

**غفار نارو غمل**

---

**پنځه کلن پلان – دریم کال**

# لـه پـلان څخه زیـات تـولیـد

دحجاری او بتون فابر یکـه چی په ۱۳۲۰ کال کی دیـوه سهامی شرکت په توګه پـه خواجه ملاکی جوړه شـوه ، دهیواد له پراخو فابریکـو څخه ده . دغه مو سسـه دمرمرو ، موزا ئیکو اود لاسی صنایعو دستګاه لری . ددغـی فابر یکی له کار او تو لیداتو سره دپیژ ند ګلوی په مقصـد ددی فابر یکی انګړ ته ور ـ ننو ځو . په انګړ کی یی دغره دناصیقل شوو دبرو دیـر ی ستری ډبری وینو چی په بیلا بیلو حجمونو سره یی‌ددستګاه بهرنی برخه ناښکلی کړی ده. خو کله چی دمرمرو ځا نګی ته ورځو ، یو هیږو چی د غـره دډبرو تختی چی دغی دستګـاه ته لیږ دولی کیږی ، دما هرو کار ګرانو په‌لاسونو اودځا ـ نګړو ماشینو تو په مر ستـه ،

ترغو ځیدو او پالش ورکو لو وروسته په زړه پوری ځلا او ښکلا پیدا کوی . دمرمرو لـه دستګاه څخه دکتنی په وخـت کی، دهغی ځانګی له یو تکړه کارګر سره ددغی دستګاه‌دکار په باب مرکه کوم نو مـو ړی وایی : دمرمرو په ځا نګه کی دډبرو ډیری لویی ټو تـی، داړوندو ما شینو نو پـه واسطه معمو لاً ددوه نیمـو سانتی مترو، څلورو سا نتی مترو اوپه بیلا بیل پنډ وا لی سره اره کیږی ، وروستـه بیاره شوی تختی ، دځا نګړو

ماشینو نو په واسطه پا لش کیږی دپالش دعملیی له امله دډبرو پنډ والی څو ملی متره کمیږی.دغه عملیه په پنځـو پړا وونو کی ترسره کیږی‌چی له پنځم پړاو څخه ورو ستـه دډبره پوره ځلا پیدا کـوی ، دمرمرو دوول دوول ډبری چـی په دی دستګاه کی تو لیدیږی، ودانیو ته ځانګړی ښکلا او لطافت‌ و ر کوی اود ودا نیو عمر او مقاو مت زیاتوی .

تر دی وروسته بیا د لاسی صنایعو دستګاه ته ور ځـم ، کله چی دغی تو لیدی دستګاه ته ور ننو ځم ،یو شمیر کار ـ ګران وینم چی دډبر ینـو ښکلو محصو لاتو په برابرو لو سره په هیواد کی دمستظر فه

شیانو اود ډبر ین هنر پرا ـ ختیا ته ښکلا و کوی ، اوددغی دستګاه دکار ګرانو په‌واسطه اود دوی په ځا نګړی مهارت اوښکلا سره تابلو ګا نـی، دمیز دسر صندو قچی ، خا ـ کستر دانی ، ګلدانی ،قلمدا ـ نی ، دمیوو خوړ لو لو ښـی او په لسو نو دوله نـور محصولات تولید یږی .

دلاسی صنایعو د دستګـاه ترکتنی وروسته دترا سو او موزائیك دستګاه ته ور غلم، په دی‌دستګاه‌کی سمنټی‌ښښتی، دموزا ئیك ډبری او ستـر ی تختی اود ترا سو تیږ ی تو ـ لیدیږی . ددغی دستګاه پـه تو لیدی جوړ ښت کی دموادو ترکیبو نه په فنی او علمـی توګه کیږی او دداخلی اوخا ـ رجی موادو له پلوه اود بین ـ المللی نور مو نوله مخی ددی دستګاه محصولات په ډیـره لوړه تخنیکی سطحه کی‌راځی. ددی دستګاه محصولات په‌زړه پوری رنګو نو او همدار نګـه په ساده او یورنګ دننداره ـ کوو نکو پام ځانته ور اړوی.

ددغی موسسی له تو لیدی شاپو نو او له کار ګرا نـو سره مر کـه دا تکی څـر ـ ګندوی چی دتو لید په بهیر کی دکتنی وړ نیمګړ تیاوی نشتـه ددغی فابر یکی دکار ګرا نـو یواز نی غو ښتنه ، د دو ی د خوړو کیفیت او تنوع ته‌زیاته پاملرنه ده .

په پای کی ددغی مو سسی له یو نفر مسوول سره مرکه کروچی نو موړی ددی فابریکی دفعا لیتو نو په باب دا سـی وایی : ددغی مو سسـی د ۱۳۶۷ کال تو لیدی پلان د۳۷ ملیو نو افغا نیو په ار زښت اود روان کال دلو مړ یو اتو میاشتو پلان د۲۶ ملیو نـو افغا نیو په ار زښت اټکـل شوی و، چی ددغی مو سسـی منسوبینو په زیاتو مځو سره وکولی شول دکال په لومړ یو اتو میا شتو کی د ۳۱ ملیو نو افغانیو په بیه تو لید وکړ ی او ور کړ شوی پلان په سلوکی ۱۱۹ تطبیق کړی .

**موفق**

---

دلوست لیك زده کـړی پروسی دانقلاب په کلونو کـی‌په سلګو نو زرو لـه سواد څخه محروم کسان دلوسـت‌لیك زده کړی کورسو نـو ته‌لوړراو ښوښتل اوهغـوی ته یی پراخه زده کړه‌ورکړه.محمد اسلم او رحیم اللـه دبګرامیو دنساجی هغه ځوان کار ګران دی چی په‌ډیـره‌مینه دسواد په زده کـړه بوخت دی.

د بابه خان عکاسی

---

# د«یاحق» جریده خپره‌شوه

بسم الله الرحمن الرحیم

وقل جاء الحق وزهق الباطل ان الباطل کان زهوقا

یاحق

۱۰ سپتمبر ۱۹۸۸

په هیواد کی ددمو کراتیکو حقوقو او آزاد یو دپراختیا او ودی په بهیر کی د سیا سـی سازمانو نو او ګوندو نو جوړ ـ ول او ورسره سم دمطبو عاتو او دبیا ن د آزادی په لړ کی دغیر دولتی جر یدو خپرید ل پراخه عملی بڼه غوره کوی. دادی په همدی بهیر کی‌دیا ـ حق په نوم یوه نوی جریـده چی موسس یی غلام جیلا نـی «محسنی» ښودل‌شو ی دمحترم محمد طاهر محسنی په مسوول

مدیریت په شلورو مخونو کی ددولتی مطبعی له لاری چاپ اوخپره شوه . دجریدی لـه مطالبو څخه ښکـار ی چـی دغه جریده پخوا په پاکستان کی دیوی مودی لپاره خپریده او په هغه هیواد کی یـی خپلی خپرونی د۱۳۶۳ کـال د قوس له ۱۵ څخه پیل‌کړی وی. خو څرنګه چی دغی جریدی لـه هیواد نه بهر هم حق او حـق ویل نه پټول نو ځکه یـی خپرونی هلته ځنډول شو ی‌او چلوونکی یی جیل ته غورځول شویدی .د یاحق دجریدی په

لومړی ګنه کی دبیلا بیلـو لیکنو په لړ کی چی‌د‌جریدی دکار کوو نکو دځانګړی تو ـ لنیز ذهنیت او ایدیال‌ښود نه کوی «د فشرده مطلبی را جع به وضع ونقش جریده یاحق» تر سر یزی‌لاندی یو ه‌په زړه پوری لیکنه چی په پاکستا ن کی دفرهنګی استـبداد زور زیاتیو ، ویره وونکوجیلو نو، بډو اخیستنو او خیا نتونو او دپاکستا نی وا کمنا نودپردی شاته ناولو طرحواو پلا نو نو

څخه چی دافغا نستان دخپلوا ـ کی په وړا ندی یی لری پـه مستنده توګه پرده پور تـه کوی له هغو سره سم پـه پیښور کی داوه ګونی ائتلا ف د«مشرانو » مریبتوب‌او دسیمی له ارتجاع او نړیوال امپر یا ـ لیزم سره زموږ د هیوادملی ګټوپرخلاف دهغوی دپیبلتو ب او همدا شان ددوی په خپلو کی دسختوبی اتفا قیواو غلاوو

او لوټمار یو څخه پدا سـی مستنده توګه پرده‌پورته کوی چی لوستو نکی د افغا نـی انقلاب ضد او دسیمی دارتجاع او امپریالیزم دخطر نا کوپټـو پلا نونو څخه پوره معلوما ت تر لاسه کوی ، پدی لیکنه کی

هغه څه راغلی چی خپلـه دجریدی په چلوو نکو تیـر شوی ا ودوی یی په پای کی دی ته اړ کړی چی د ذلـت، خواری او پردی ژوند څخـه خپل هیواد ته راوګر ځـی

اودسو لی اوملی روغی جوړی په فضا کی‌خپل آوازدلته خپلو خلکو ته اوچت کړی .

دوی په‌خپلو لیکنو کی د ټولو شخصی زوریدنو په څنګ کی چی دوی یی وطن ته په را ـ ستنیدو مجبور کړی دی پـه داګه لیکی چی دافغا نی‌افرا ـ طیونو او پاکستا نی واکمنانو دافغانی ضد دښمنی شاته یی زموږ دهیواد دخپلوا کـی، د

ځمکی دسلامتیا او دملی وا ـ کمنی خلاف ناو لی پلانو نـه احساس کړی او لید لی یـی دی، او کله یی چی دغو پلا ـ نونو ته دمهاجرینو پام اړو لی نود پاکستا نی مقا ماتو لـه لوری دافراطیو نو دمشرانو په توطئو زندا نونو ته تللی دی اوهلته یی دپاکستا ن اصلـی څیره لیدلی ده . ددی جریدی

دکار کوونکو له‌نظره پاکستان دافغانی مهاجر ینو لپاره یـو ویره وونکی جیل‌دی ، دپـا ـ کستان ټولنه په مظلومیت او مریبتوب کی‌ژوند کوی، د هغه هیواد جیلخانی او قصا بخانی دمنځنیو پیړیو دغه شان مر ـ کزونو ته ورته دی ، په پا ـ کستان کی دافغانی تنظیمو نو

په نوم اداری هم دلو ټولـو، وژلو او زندی کولو ویره‌وو ـ نکی مرکزونه دی ،تنظیمو نه ښکاره او پټ وژنځا یو نـه لری چی سخت ویره وو نکـی دی، ددغی جریدی د لیکنـو څخه ښکار ی چی دافراطیو نو

مشرا ن دسیاسی ارادی لـه پلوه دومره بی واکه دی چی له مهاجر ینو څخه دوی بـی وسی ښکاری ځکه دوی یواځی دنورو دلاس جوړی شو ی‌نا ـ ټکی دی چی له ځانه دځو ـ ځیدو هیڅ وس نلری .د جر ـ یدی لیکونکی دله د ډیروترخو واقعیتو نو پـه لید لو سره چی دلازیاتی رسوا ینی وعده

یی‌هم‌ورکړی پدی عقیده شوی چی دهیواد ملی خپلوا کـی، ځمکنی سلا متیا او ملی وا ـ کمنی دساتنی او د هیوادد‌تر ـ قی او پرمختګ او دغه شان دافغانی لوړ اواصیل غـروردد

ساتنی لپاره یواځنی لاره دملی روغی جوړی دسیا ست د بر ـ یالی کیدو لاره‌ده او پدی لاره کی خلکو ته پراخه غوښتنـه وړاندی کوی چی دجنګ جګړی په وړاندی را ولاړ شی .

د ثور انقلاب حقیقت ور ـ ځپاڼه پداسی حال کـی چی‌د جریدی‌کارکوونکو ته دلا زیات

بریالیتو ب غو ښتنه کوی او دوی ته دیاحق دجر یدی‌دلو ـ مړی ګڼی دخپر یدو په ویاړ مبارکی وایی هیله کوی چـی

دسولی ، پرمختګ او ټو لنیز عـد ا لـت په لار کی دمبار زی لیکی لا پیا ـ وړی او پراخه شی .

**دث. ا.ح. د ورځپاڼی د لیکنی هیات**

